مؤسسة المناصر الإعلامية

منجنيق الدولة الأسلامية

رحمه الله

# ابو محمد العدناني

# پيژندنه او تاريخچه

ليکوال

رحمه الله

ابوسفيان ترکي بن مبارک البنعلي

( أبوهمام بکر بن عبدالعزيز الأثري )









# رحمه الله
# د ابومحمد العدناني

## پیژندنه او تاریخچه


لیکوال

رحمه الله

ابوسفیان ترکي بن مبارک البنعلي

( أبوهمام بکر بن عبدالعزیز الأثري)


یادونه: دا رسالة ابو سفیان ترکي د شیخ عدناني په ژوند کې لیکلې وه نو مونږ

د هغې پښتو ترجمه ددواړو له شهادته (کما نحسبهم والله حسیبهم)

وروسته تاسو خدمت کې ږدو



بسم الله الرحمن الرحيم

د ډېرو ګټورو لیکنو تر څنګ د یوې منظومې( شعري ټولګې) لیکوال، ستر عالم، او اتل مجاهد أبومحمد چې خپل نوم یې شیخ طه صبحي فلاحة دی، او په کنیه( لقبي نوم) ابومحمد العدناني سره شهرت لري، د اسلامي دولت رسمي ویاند دی، په (1977میلادي) کال کې د سراقب دښار سره نژدي د بنش نومي کلي کې چې د ادلب د ولایت یو سیمه ده زیږیدلی دی، او د عراق غرب (لویدیځ) خواته د الأنبار د ولایت په قضاء حدیثة نومي کلي کې یې استوګنه کړیده، او د (2005میلادي) کال د مې د میاشتې په 31 نیټه په انبار کې د ناټو د قواوو له خوا په بند محکوم او تر اوږدې مودې بند تیرولو وروسته د الله تعالی په فضل راخلاص شو.

دا چې د شیخ صاحب رحمه الله د ژوند ښکاره او ځلانده منهج او تګلاره داوه چې : د هر دښمن او د هغوی د ټولو ګوډاګیانو خلاف جهاد کول یوه ایماني دنده او الهې غوښتنه ده، نو کافر دښمن، کینه ګر مخالف، خپل پوره کوشش کوي چې د شیخ رحمه الله سپکاوی او نقصان بیان کړي، او خلک ترې ویروي تر څو ترې کرکه او نفرت وکړي، او د خپلو شومو اهدافو د پلي کولو په خاطر داسې دلیل پیش کوي چې دا یوه ناپیژندل شوې څیره او شخصیت دی، د علم شاګردان او دین ته منسوب خلک یې نه پیژني، د سلفي دعوت مشران ، علماء اوشیخان خو لا پریږده.

خو ! د دوی دا خبره هیره ده ، او یا یې قصدا هیره کړیده چې د علماوو حق پرستي او حقانیت هر وخت شهرت پورې تړلی نه وي، او بیا خصوصاً په داسي زمانه کې چې عالم هغه چاته ویل کیږي ، ځوک چې د رئیس جمهور( ولس مشر) ارګ ته نږدي وي، ځوک چې په چوکیو ناست او خپلې چپنې او جامې یې د غرونو او غارونو په دوړو نه وي ګردجنې کړې چاته چې دهغه خاص موټروان د کور بلکې د قصر دروازي سره انتظار باسي.

نو دا څه نااشنا خبره نه ده چې ډیر داسې عوام مسلمانان به وي چې الشیخ ابومحمد العدناني نه پیژني، او د دې په څنګ کې دا هم څه د عیب خبره نه ده چې ځینې خلک ورته ناپیژندل شوې ځیره، جاهل ناپوهه او بدعتي وایې

خو مونږ دا وایو: د حدیثو د راویانو په اړه پوره او کره ( صحیح او موثق) معلومات اهل الحدیث (د حدیثو علماوو) ته وي، او د تفسیر د علماوو د ویناوو په اړه کره معلومات د تفسیروالاوو ته وي، همداراز د عربو ژبه او د ژبې متعلقه معلومات د لغت علماوو ته وي، او د خلکو د مرضونو تشخیص او د درملنې لارې چارې ډاکټران پیژني او مهارت یې لري، او بیا د هر فن والا د هغې اهل وي او یواځې همغوي په کې د بحث کولو حق لري.

نو دلته هم دا خبره کول او منل عقلمندي ده چې د جهاد او سنګرونو د اتلانو او د غرونو او غارونو د زمریانو په باره کې باید

هغه څوک خبرې وکړي، چا چې ورسره شريکه زندګي تېره کړې وي، ناسته پاسته يې ورسره شوې وي، خبرې يې ورسره کړې وي، نه هغه څوک چې په بريطانيا او کاناډا کې ميشت وي، او د مرتدينو په هيوادونو کې د طاغوت حکم ته د ژوند په هره غټه او وړه کې لبيک وايي او سرکوزی ورته لاس په نامه ولاړ وي.

که دوی خپله ژبه په بدو ګويا کړه، نو په دې خبر شئ چې دا به د دوو حالاتو نه خالي نه وي: يا به جاسوس، بې دينه مرتد وي، او يا به ناخبره، جاهل او ګناهګار وي، دا دويم حالت يې تر ټولو کم او ادنی حالت دی، ځکه چې مونږ د خلکو په ظاهر فيصله کولی شو او د باطن علم يې د الله تعالی سره دی.

مخکنيو خبرو ته په کتلو سره ماته د الشيخ ابومحمد العدنايي د ترجمې، پېژندنې او بيوګرافۍ په هکله د الشيخ ابوسفيان ترکي بن مبارک البنعليؒ معلومات ښه او موثق ښکاره شوه ځکه چې دا ورته ډېر نږدې دي او پوره يې پېژني.

محترمو لوستونکو !! تاسې د منظومې (شعري ټولګې) د مؤلف د تاريخچې په باره کې د هغه چا د قلم ليکنه مخې ته ږدم څوک يې چې له نږدې څخه پېژني ا ود ژوند د ډېرو خوږو ترخو سره يې اشنا دی.

# اللفظ اللساني فى ترجمة العدناني

د ابوسفيان تركي بن مبارک البنعلي رحمه الله ليكنه

الحمد لله معز الموحدين، والصلاة والسلام على الصادق الأمين، وعلى آله وصحبه أجمعين ... أمابعد:

د الله تعالی د حمد او ثنا ویلو ، او په رسول الله صلی الله علیه وسلم د د درود وسلام ویلو څخه وروسته !!

الشیخ ابومحمد العدناني حفظه الله چې یو تکړه مجاهد او علمي شخصیت دی، پېژندنې ، تاریخچې او تعریف ته ضرورت نه لري،ځکه علماء وایي: ( المُعَرَّفُ لَا يُعَرفُ) معروف، مشهور او پېژندل شوی بیا تعریف او پېژندنې ته اړتیا نه لري.

مګر په دې وروستیو وختونو کې د اسلامي امت په علمبردارانو، مشرانو، او شاهسوارانو ډېر تیری او ظلم وشو، تر دې چې د شیعه ګانو یو زده کوونکې هانې السباعي هم زمونږ په محترم شیخ صاحب باندي د فساد، دوکې، دروغجنی تهمتونه وتړل، او د سپکاوي په قسماقسمه (رنګارنګ) صفتونو یې وستایلو او په ډېرو ناکاره نومونو یې ونومولو، خو عرب وایې: ( كلُّ إِنَاءٍ بِمَا فِيْهِ يَنْضَحُ) له هر لوښي څخه هغه څه راوځي چې پکې وي نو له مردار او نا اهله نفس څخه د همداسې خبرو توقع او امید کیږي.

نو همدې لاملونو دېته وهڅولم چې د تورې ، قلم او علم د میدانونو د بهادر شهسوار مختصر( لنډه) پیژنده، ترجمه او تاریخچه د دې په خاطر ولیکم چې دوستان پرې خوشحاله او د دښمنانو پرې زړه دردمن او زاره یې پرې ترکه وچوي، امام مسلم رحمه الله په خپل صحیح کې له ابن سیرین رحمه الله څخه روایت کوي وايي:

" لَمْ يَكُونُوا يَسْأَلُونَ عَنِ الْإِسْنَادِ، فَلَمَّا وَقَعَتِ الْفِتْنَةُ، قَالُوا: سَمُّوا لَنَا رِجَالَكُمْ، فَيُنْظَرُ إِلَى أَهْلِ السُّنَّةِ فَيُؤْخَذُ حَدِيثُهُمْ، وَيُنْظَرُ إِلَى أَهْلِ الْبِدَعِ فَلاَ يُؤْخَذُ حَدِيثُهُمْ "[1] .

اول به یې د اسناد( د حدیث د رجالو او راویانو ) باره کې پوښتنه او پلټنه نه کوله، خو کله چې (د دروغو د زیاتیدو، د اختلافاتو د پیداکیدو، او داخلي جګړو دپیښدو ) فتنه راغله ، نو بیا به یې دا پوښتنه کوله : مونږ ته مو خپل د سند کسان په نښه او معرفي کړئ، نو د سند راویانو ته به کتل کیدل، که چیرته به راویان اهل سنت وو نو حدیث به یې ترې اخیست(روایت کاوو)، او که چیرته به بدعتیان وو نو د هغوی حدیث به یې نه اخستو، او نه به یې روایت کولو.

(1 ) د صحیح مسلم مقدمه ( ج1/ ص 15)

# د شیخ صاحب د پیژندنې باره کې یو څو خبرې

## اوله : د شیخ صاحب د علم زده کړه:

شیخ صاحب له ماشومتوبه د جوماتونو سره بې کچه مینه او زیات تګ راتګ درلود، او د دې ترڅنګ یې لیکنه او لوستنه هم د زړه دخوښې داسې مشغولتیا وه چې دماشومتوب پر مهال به یې که کورنۍ ورته څه تحفه اخستل غوښتل نو واړه کتابونه او د قصو، افسانو، ناولونو رسالې( واړه کتابونه) به یې ورته راوړل، ځکه چې هغوی پوهېدل چې دده همدا ډیر خوښیږي.

همدا وو چې له ماشومتوبه په ډیرو ثقافتي معلوماتو سمبال وو، او هر کتاب د لغت، فلسفي او ... به چې په لاس ورغۍ نو یو ځل به یې خامخا لوستلو، بالاخره الله تعالی ورته د قرآنکریم د حفظ په حلقه کې د ناستې او زده کړې توفیق ورکړو، او د یوه قاري صاحب سره یې قراءت شروع او بیا یې د حفظ اراده وکړه، هماغه وو چې د یو کال د پوره کیدو نه مخکې یې قرآنکریم ښه پوخ او کره ( پوره او سم) یاد کړو.

او له دې وروسته یې له عامې(ابتدائي) مطالعې څخه خاصې(د شرعي کتابونوپه عامه پسې درجې) مطالعې ته پام راواوړید، او د تفسیر د کتابونو د لوستلو په لړۍ کې یې تفسیر ابن کثیر سره ډیره مینه وه ، څو ځله یې هغه ولوستلو، بیا یې د سیدقطب فی

ظلال القرآن ولوستلو ،او قصد او اراده يې وکړه چې د (في ظلال الظلال) په نوم څه ګټوري ليکنې وکړي،

له تفسير وروسته يې د حديثو دکتابونو مطالعه شروع کړه، چې ډير مهم ورته صحيحين (بخاري او مسلم) وو، هر وخت به يې لوستل ، اوبيا د فقهې عام کتابونه يې ولوستل خو د امام شوکاني رحمه الله کتابونو سره يې د زړه مينه وه، بيا خصوصاً (نيل الأوطار) سره ، د دې تر څنګ يې ( فقه الجهاد) باندې يې خاص اهتمام او پاملرنه وکړه، چې په دې برخه کې يې ځينې کتابونه ولوستل دمثال په توګه د ابن النحاس الدمشقي ( مشارع الاشواق)، کتاب يې له درى ځلو نه زيات ولوستلو، همدارازد سيرت او تاريخ کتابونو ته يې ډيره پاملرنه او توجه کړې وه ، او بيا په تېره د ابن کثيررحمه الله ( البداية والنهاية) يې شپږ ځلې مطالعه کړه،او د ادب او لغت کتابونه خو يې دومره خوښ وه او دومره يې مطالعه کړي چې پوښتنه يې مه کوه ، ځکه هغه يې خپل فن او د زړه شوق وو، نو د ادب اکثره کتابونه يې ولوستل لکه : ( البيان والتبيين) د جاحظ، او ( العقد الفريد) د ابن عبد ربه الأندلسي، او داسې نور ګڼ کتابونه يې مطالعه کړه.

د عربي ژبې زيات ديوانونه يې ولوستل لکه : معلقات او دهغې شرحې، او ډير شعرونه يې په يادو زده کړه، او تر ډيره حده داسې معلوميدو چې د متنبي ديوان يې ياد وو، او دهغه باره کې

يې داسي ويل: د جاهليت او اسلام د مرحلو تر ټولو وتلی او اتل شاعر متنبي دی.

د نحو ( عربي ګرامر) په باب کې يې ( الآجرومية) د أبي عبد الله ابن آجروم، او ( قطر الندى) د ابن هشام، او ( الألفية) د ابن مالک مطالعه کړې وو.

او معاجم( دلغتونو او معناګانو کتابونه يعنی ډکشنرياني) يې هم لوستلې وې چې د هغې له جملې ( لسان العرب) د ابن منظور يې ډېر په مينه لوستلی وو، او داسې نورې هم مطالعه کړې وو.

ما الفضل إلا لأهل الفضل إنهم **** على الهدى لمن استهدى ادلاء

و وزن كل امرئ ما كان يحسنه **** والجاهلون لأهل العلم أعداء[1]

هيڅ فضيلت او بهتري نشته مګر د فضل خاوندانو لره بهتري ثابته ده، دوی په خپله هم په هدايت دي، او څوک چې د هدايت په لاره تلل غواړي دوي د هغوي رهنما او لارښود دي، او دهر انسان وزن په هغه څه پورې تړلی وي چې ښه پرې پوهيږي او

(1 ) دا شعر علي بن أبي طالب رضي الله عنه ته منسوب دی او خطيب په خپل کتاب ( الفقيه والمتفقه) کې په ( ج 1/ ص 424) کې راوړی دی.

کره او مضبوط یې یاد کړي وي، او ناخبره او جاهل خلک د علم د خاوندانو دښمنان وي.

## دویم: د شیخ صاحب مشهور استاذان:

**شیخ رحمه الله علم د کتابونو[1] او له مشهورو علماوو څخه یاد کړی دی ، په شام کې یې د ځینو مشایخو څخه زده کړه کړېده.**

**دا چې په سوریه کې د طاغوتي حکمرانانو له اړخه امنیتي حالات ګډوډ او په مسلمانانو بندیزونه زیات وو نو شیخ صاحب به له خپلو ملګرو سره په کورونو کې پټ راغونډېدل او علمي درسونه به یې کول چې دې څو کاله دوام وموندلو، او بالآخره شیخ صاحب ته الله تعالی په عراق کې د اوسیدو او ورتلو فرصت برابر**

(1 ) که څوک داسې اعتراض وکړي چې دکتابونو نه بغیر د استاذ نه علم اخیستل علم نه بلکې بې لاریتوب او ضلالت دی.

نو مونږ ورته وایو: دا خبره صحیح نده ، بلکې یو څه استثناء لري، خصوصا په داسې وخت کې چې حق پرسته اهل علم کم بلکې د نشت برابر دي، ابن عثیمین رحمه الله وایي: ځینې خلک وایي : دچا لارښود او استاذ چې کتاب وي ، نو غلطي یې له صحیح او رسا خبرې څخه زیاته وي، خو دا خبره همداسې مطلقه کول صحیح نه ده، ځکه چې ځینو علماوو له کتابونو څخه علم یاد کړي وو، او الله تعالی ورته تولې لارې برابري کړې وې، او په دین کې امامان او ډیر مشهور شویدي ( فتاوی نور علی الدرب لابن عثیمین) .

بل ځای وایې: د علم د زده کړي درې قسمه وسائل او اسباب دي :

اول: د یو دینداره او باوري عالم او شیخ څخه علم واخله ، او د ایې ښه طریقه ،قوي وسیله، او د علم د لاسته راوړلو نږدې سبب دی.

دویم: چې علم د هغو کتابونو څخه یاد کړې چې باوري او مشهورو علماوو لیکلي وي.

دریم: د هغو کیسټو اوریدل چې باوري او حق پرسته علماوو ډکې او نشر کړې وي.

او ضروري خبره پکې کوشش کول ، او صبر کول، او نیت خالصول دي، ( فتاوی نور علی الدرب لابن عثیمین)

کړو او هلته یې نوري علمې زده کړې ترسره کړې، او د مشهورو استاذانو او شیخانو له جملې څخه یې دا لاندني استاذان وو:

1 ) الشيخ أبوأنس الشاميؒ: ده سره یې ډېر وخت تیر کړی او سبقونه یې ترې ویلي او د خپل استاذ په باره کې یې دا شعر هم ویلی وو:

من شامنا أسد العراق أبو أنس **** بفكاهة ينسي المصاب ويسرر

في العلم بحر، في الحروب مهندس **** حبر الحديث، وفي الساسة عبقر

زمونږ د شام څخه د عراق زمری ( شیر) بو أنسأ وو، چې په خپله خوږه ژبه او زړه راښکونکې لهجه یې له مصیبت زده (غمجن) څخه غم او مصیبت لرې کولو او هیرولو او خوشحالي یې وربښله، په علم کې تکړه ( دبحر په شانته پراخه او هر اړخیز معلومات درلودل)، او د جنګونو انجنیر وو، د حدیث د علم شاهکار او په سیاست کې وتلی او نامتو اتل وو.

2 ) الشيخ أبوميسرة الغريبؒ: ده سره شیخ صاحب د بند او آزادی دواړو دورو شاګردي او زده کړه کړیده او ډیر علمې معلومات یې ترې ترلاسه کړیدي.

**3 ) أمیر المؤمنین أبوبکر البغدادي حفظه الله، چې په ده باندې یې د حفظ او یادو د قرآن قرائت بشپړ کړ(یعنې قرائت یې په سند سره تر رسول الله ﷺ پورې له امیر المؤمنین څخه واخیست)، او أمیر المؤمنین د ده باره کې داسې وایي : (لم ارکحفظه اللهم حفظ فلان). ما دده په شانته ښه او مضبوطه حفظ او حافظې والا نه وو لیدلي ، که چېرته وي نو د فلاني به وي.**

لاتأخذ الـعلم إلا عن جــهابذة * * * * باالــعلم نحیا وبالأرواح نفدیه

أما ذووا الجهل فأعرض عن مجالسهم ** قد ضل من کانت العمیان تهدیه.

**علم مه اخله او مه یې یادوه مګر د علم د متخصص او ماهر څخه یې اخله او یادوه، په علم ژوندي یو، او له همدې علم خپل روحونه قربانوو او دفاع ترینه کوو، او جاهلان چې کوم دي د هغوی له ناستې پاستې او مجلسونو څخه ډډه کوه، ځکه چې چاته چې ړانده لاره سیده کوي، نو په ګډوډو یې روانوي او بې لارې کوي یې.**

دريم : د شيخ صاحب ځيني ليکني او کتابونه:

**مخکې او اوس هم د شيخ صاحب وخت ډير کم او تنګ دی، نو له همدې امله يې اکثره ليکنې د شعر په ژبه کې کړيدي، د شعر او نثر له ګڼو ليکنو څخه يې دا يو څو نمونې په خير ذکر کوو:**

**اول: د جهاد د مسائلو د پوره او هر اړخيزې پوهې په خاطر يې( فقه الجهاد ومسائله) نومي کتاب ليکلی.**

**دويم : (فقه الجهاد) خو افسوس چې دا کتاب ورنه امريکايانو په جيل کې اخيستی دی.**

**دريم: (السلسلة الذهبية فى الأعمال القلبية) د تزکية النفس او د زړه د اصلاح باره کې يې ليکلې دی، او دالله تعالی په فضل په ( 5/ ربيع الأول/1436هـ) تاريخ شرحه او ترجمه شو.**

**څلورم: ( معينة الحفاظ) دا يې شعري ټولګه ده، چې د قرآنکريم د حافظانو لپاره يې پکې ځينې ګټور او ضروري مسائل راغونډ کړيدي.**

**پنځم : د فلوجې د دويمې جګړې په باره کې يې يوه قصيده( شعر) ليکلی چې له دوه سوه زيات بيتونه لري.**

شپږم: د ( القاعدي) په نوم یې یوه فخري قصیده لیکلې ، او د هغه چا رد او ځواب یې پکې کړیدي چا چې په پخواني القاعده باندې نیوکې او انتقادونه کړي وو.

## څلورم: علمي درسونه :

شیخ صاحب رحمه الله  درس تدریس ته ډیره پاملرنه لرله، او بیا خصوصاً د الله تعالی د لاري زمریانو مجاهدینوته ، نو داسې ډیرې ورځې د شیخ صاحب په ژوند کې راغلي چې په شپه ورځ (24 ساعته) کې یې څوارلس درسونه او علمې مجلسونه کول، او په درسونو کې یې ډیر زور په شرعي علومو، عقیده، قرآنکریم، عربي ادب او جهادي مسائلو باندې کولو.

په عقیده کې یې د توحید اکثره کتابونه تدریس کړیدي لکه:

1 ) الأصول الثلاثة.
2 ) القواعد الأربعة.
3 ) شروط ونواقض : لااله الا الله.

همدارنګه یې دایمان او کفر په مسائلو او دېته ورته قضیوو او احکامو باندې خاص اهتمام کولو، او د قرآنکریم د پوهنې لپاره به یې د درس حلقې جوړولي چې ځینې د تلاوت د تصحیح او ځینې نورې به یې د حفظ لپاره وې، او په دې کې به یې اکثره هغه

ملګري په نښه کول کومو ته به چې قرآنکریم نه وو یاد، او په لیک لوست به نه پوهیدل.

او د عربې ژبي د پوهنې په لړ کې د ( آجرومیة) د تدریس په څنګ کې شیخ صاحب د نحوې ( دعربې د ګرامر) یوه خاصه طریقه درلوده چې په شپږو مرحلو کې به یې ترسره کوله، او دا طریقه یې له خپلو استاذانو څخه یاده کړې وه.

او د جهاد په باره کې یې خپل کتاب (فقه الجهاد ومسائله) ، او ( العمدة فی اعداد العدة) تدریس کول، او نور ګڼ شمیر کتابونه او علمي متنونه یې تدریس کړیدي.

إذا قالَ لم يَترُكْ مَقَالاً ، ولم يقفْ ** لعيّ ، ولم يثنِ اللسانَ على هجرِي يُصَرِّفُ بالقولِ اللِسَانَ إذا انتحَى ** وينظرُ في أعطافهِ نظرَ الصقر.[1]

کله چې خبره کوي نو بیا خبره نه ترې پاتې کیږي او د ناپوهۍ له امله یې ژبه نه دریږي.

د هغه ژبې صفت نه کوي چې زما د جدایې خبره وکړي

کله چې اراده وکړي نو ژبه په خبره ورواړوي او د موضوع څنډو کې لکه د باز غوندې. ګوري

(1 ) د معاویة بن أبي سفیان دیوان (20) مخ.

## پنځم : دشيخ صاحب ځينې اهم منصبونه:

**شيخ صاحب د دوه زره (2000) ميلادي كال راهيسې په منظم عملي جهاد هغه مهال لاس پورې كړ،چې په سوريه كې يې دخپلو (35) ملګرو سره د أبومصعب الزرقاوي رحمه الله سره بيعت وكړو، او له هماغې ورځې د نُصيري[1] نظام د رانسكوريدلو لپاره هلې ځلې پيل اوشروع كړې، او دا مهال امريكايي فوځونه عراق ته نه وو راغلي، كله چې امريكايان عراق ته راغلل، نو بيا يې خپله كډه د عراق په لور راوكوچوله، اوهلته د ابومحمد اللبناني رحمه الله سره مخ او ملګري شو.**

**او له هماغې ورځې شروع او تراوسه د الله تعالى په فضل سره په شام او عراق كې په جهادي سرګرميانو بوخت دی، او د ژوند په دې اوږدو كې يې په لاندې منصببونو كې كار كړيدی:**

**1 ) د توحيد ا وجهاد په ورځو كې يې د حديثه په لښكر ګاه ( غونډ) كې دمدرب ( ټريننګ وركوونكې) استاد دنده په غاړه لرله.**

---

(1 ) دا يو باطني حركت دی په دريمه پېړۍ كې پيدا شويدی، د غلو كوونكو شيعه ګانو څخه شميرل كيږي او په علي رضي الله عنه كې د الله موجوديت باندې معتقد دي او د علي د خدايتوب عقيده لري، د هر ښكيلاكګر سره د مسلمانانو په خلاف يوځای شوي مقصد يې د اسلام او مسلمان له مينځه وړل دي، او د دې ډلې مؤسس او بنسټګر محمد بن نصير البصرى النمرى دی، وروسته فرانسوي استعمار د دوی نوم دنصيريانو نه علويانو ته ددوی د حقيقت پټولو په خاطر بدل كړ، (الموسوعة الميسرة في الأديان والمذاهب والأحزاب المعاصرة)

2 ) د أبومصعب الزرقاوي رحمه الله له خوا د حديثه مشر او امير.

3 ) د الجزيري د لشكرګاه ( غونډ) د جهادي لارښوونو استاذ.

4 ) د انبار د غربي طرف د قاضي دنده ( شرعي القاطع فى الأنبار الغربي).

5 ) د دولة العراق الاسلامية وياند.

6 ) د الدولةالاسلامية فى العراق والشام وياند.

7 ) د الدولة الاسلامية ( دولة الخلافة) وياند.

ركاب مفظعة،حمال مضعلة **** إن خاف معضلة سنى لها باباً

شهاد أندية, هباط أودية **** حمال الوية للوتر طلاباُ

سم العداة وفكاك العناة إذا كان **** الوغى لم يكن للموت هياباً . [1]

د هر مشكل شاهسواران، او د هرې پښتې ماتوونكي كړاو باروونكي او برداشت كوونكي، كله چې د كوم ګران كار يره وي، نو هغې ته دروازه جوړه او برابره كړي، د مجلسونو حاضري كوونكي او ګواهان، د دجهاد لپاره هر ناو ته كوزيدونكي، د بيرغونو

(1 ) د خنساء شعر دي ، مبرد په ( التعازى والمراثي) نومي كتاب كې په ( 26) مخ كې راوړيدي.

اوچتوونكي ا ود غشو او نيزو غوښتونكي، د دښمنانو لپاره زهر ،او د بنديانو راخلاصوونكي ، او كله چې جنګ شروع وي، نو له مرګه نه يريدونكي وي.

## شپږم : ځينې مشكلات او ابتلاګانې:

د توحيد ا وجهاد لاره په ابتلاګانو، مشكلاتو، كړاوونو، او كړليچونو پوښلې وي، هر څوک چې پرې مزلې كوي هرومرو د بدن د ماتيدو، د غړو د غوڅيدو، د بندي كيدو سره مخ كيږي، خو كاميابه كس هغه وي چې صبر وكړي، او په خپل دين او تګلاره ټينګ ودريږي، نو هله به خپل مقصد كې كامياب شي، لكه چې وايې: ( **من لم تكن له بداية محرقة, لم تكن له نهاية مشرقة**). [1]څوک چې سوزيدونكې شروع ونه لري، هغه روښانه پای نه شي موندلی،

او شيخ صاحب رحمه الله هم دهمدې لارې د بااحساسه او اتلو بچو له ډلې يو روښانه او پړقيدونكی ستوری دی، چې د الله تعالی په لار كې يې ډير كړاوونه په سړه سينه ګاللي او زغملي دي، دلته د نمونې په څير يې ځينې په لاندې ډول بيانوو:

(1) دا ابن عطاء الاسكندري قول دي.

1 ) دځوانی په وخت کې څو څو ځله د نُصيريانو ( علويانو) د حکومت د امنيتي چارواکو له خوا راغوښتل شوی او تر سختو او دقيقو پوښتنو اوتحقيق لاندې راغلی.

2 ) په جهادي او دعوتي سرګرميانو کې د لاس لرنې او وهنې په تور دری ځلې د نُصيريانو( علويانو) سره په بند محکوم شويدی، اول ځلې په بوکمال کي کله چې يې عراق ته سفر کولو، او دهغوی سره يې په بنديخانه(محبس) کې څو مياشتې تيرې کړې، خو کله چې د سختو سزاګانو باوجود يې اعتراف ونه کړو نو خوشي يې کړو.

3 ) دوه ځلې د امريکايانو په بنديخانو کې بندي شو، چې په يو محبس کې نږدې شپږکاله تيره کړه، او د زرقاويانو په هغه خيمه کې اچولی او بندي کړی وو په کومه کې چې د زرقاوي رحمه الله د اول خط سربازان ملګري بنديان وو.

قالوا: حُبست ، فقلت: ليس بضائري **** حبسي, وأي مهند لايغمد

أو ما رأيت الليث يألف غيله **** كبراً و أوباش السباع تردد. [1]

(1 ) دا علي بن الجهم ويلی، د ( التذکرة الحمدونية) په (20) مخ کې راغلي.

ويې ويل: بندي شوې، ما ورته وويل: بند راته هيڅ ضرر نه شي رسولی، کومه توره په پوښ کې نه وي ايښودل شوې ؟! او ته نه ګورې چې زمری په خپل غار کې د غرور او غيرت دوچې آرام پروت وي،او ناکاره درنده ګان بيا سرګردانه لالهانده وي.(مطلب دا چې په زندان کې آرام او صابر اوسيدل لکه د زمريانو غوندې د غيرتي خلکو کار دی او هسې سرګرداني بيا لکه د ناکاره ځناورو غوندې د کم همته خلکو کاردی)

4 ) ډيره ځله تپې شويدی او هډوکي يې د الله تعالی په لاره کې خواره واره شويدي،

فصرت إذا أصابتني سهام **** تكسرت النصال علي النصال

وهان فما أبالي بالرزايا **** لأني ما انتفعت بأن أبالي. (1)

داسې (زخمي زخمي) يم چې کله غيشي راباندې لګيږي نو د غيشو څوکې د نور غيشو په څوکو زما بدن کې ماتيږي، خو دا تول بيا هم آسان دي او په غمونو او مصيبتونو مې پروا

(1) دا علي بن الجهم ويلی، د ( التذكرة الحمدونية) په (20) مخ کې راغلي.

نشته، ځکه چې که خپلو مصیبتونو ته ځومره توجه وکړم بیا هم زما راتلونکې ته یې څه ګټه نه ده رسولې.

د عظیم ذات ،خالق لایزال، د لوی عرش د ښتن او رب جل جلاله څخه داسوال کووم چې د شیخ صاحب ساتنه او حفاظت وکړې،(البته ددې لیکنې وخت کې شیخ رحمه الله ژوندی وو) او د هر مصیبت نه یې بچ وساتې، او د اسلامي امت او اسلام دخیرخواهۍ لپاره ورته په عمر او عمل کې برکت واچوې.

اووم: د شیخ صاحب د ژوند یو څو واقعات:

د شیخ په علمي، عملي او جهادي ډګرونو کې ډېر نااشنا او اثرناکه، او ځینې نور عبرتناکه واقعې شته، خوزه دلته یو څو ترې د نمونې په څېر ذکر کووم:

1)کله چې د زده کړې په مهال د قرآنکریم په اولنۍ حقله کې کیناستو، نو زړه کې یې راغله چې زه به له ټولو ملګرو نه ښه قاري (په تجوید سره تلاوت کوونکی) یم ،ځکه چې قرآن دده یوازنی محبوب شی وو، نو کله چې یې د خپل نوبت مطابق تلاوت شروع کړو، نو غلطې ترې وشوه او استاذ ورته غلطي اصلاح کړه، نو په زړه کې یې وویل: چې یره زما خبره او فکر خو غلط وختو، نو همدا سبب وو

چې بیا یې د ښه کره او پوخ حفظ او تلاوت کوشش شروع کړو او ښه مهارت یې پکې حاصل کړو.

2)د تلاوت په درس کې یې دا آیت ولوستلو(وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ) . المائدة (٤٤). او هر څوک چې د الله تعالی په نازل شوي کتاب فیصلي نه کوي، نو همدوي کافران دي.

نو د دې آیت په تلاوت سره د شیخ صاحب رحمه الله زړه ولړزیدو، او له یو ملګري نه یې پوښتنه وکړه: د سورېې د قانون اصول او بنسټونه څه دي؟ هغه ورته جواب ورکړو: بیا یې ترې وپوښتل: د شریعت او قانون جوړونې زور او سُلطَه کومه او واکې یې د چا سره دي؟ بیا یې ترې دریمه پوښتنه وکړه: دلته د قضائیه او تنفیذیه (فیصلو کولو او عملي کولو) سُلطَه (زور) کوم او د چا چلیږي؟ ملګري ورته د دې پوښتنو جوابونه دخپلو هغو معلوماتو په رڼا کې ورکړل کوم چې په مدرسه کې یې یاد کړي وو، نو بیا ورته شیخ صاحب رحمه الله وویل: فلانیه !! د دې مطلب داشو چې زمونږ دا حکومت ټول کافر دی؟ نو ملګري ورته وویل: سلام علیکم ، او نور ترې وتښتیدو.

نو دا واقعه د دې لامل او باعث شوه چې شیخ صاحب په دې مسائلو کې پلټنه او تحقیق شروع کړ او پوره ملعومات یې راجمعه کړل.

3 ) یو ځلي د ځوانۍ په اولنیو کلنو کې د نُصیریانو( علویانو) د حکومت یوې استخباراتي ادارې راوغوښتو، او د طاغوت د حکومت عسکرو ورته وویل: دا ږیره دې ولې پریښې ده؟ شیخ ورته وویل: ما په دې باره کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ډیر احادیث لوستلي دي، نو هغه عسکر ورته وویل: ښه! دا حدیثونه یوازې تا لیدلي او اوریدلي بل چا نه؟! همدارنګې د جامو او پرتوګ د واوچت والي او لنډوالي باره کې یې ترې پوښتنه وکړه . بیا یې ورته وویل: دا د تشهد( التحیات) په مهال دا ګوته ولې خوځوې؟(شیخ صاحب به کله ناکله دا کارکولو)، نو ده ورته د یو حدیث په رڼا کې جواب ورکړو او یو حدیث چې ورته یاد وو په دلیل کې یې وړاندې کړو، نو هغه عسکر ورته وویل: تاسی کې غم دادی چې د شپې داسې په التحیات کې ګوته خوځوئ او د ورځې بیا د ټوپکونو په ماشو ،باندې ګوتې خوځوئ.

دې باره کې شیخ صاحب وایي : دې خبیث او نااهله عسکر ماته د جهاد ترغیب په داسې انداز راکړو چې هغه پرې نه پوه نه شو.

4 ) یوه ورځ په عراق کې د دریو ملګرو په ملتیا د کمین نیولو په منظور راووتل، خو افسوس چې خبره یې رسوا شوه، او مرتدین ورپسې شول، او تقریبا اته کیلو متره په موټر کې تري لاړل او هغوي ورپسي وو، خو د ډیرې تیزرفتارۍ په وجه ورته حادثه پیښه شوه او دوه ملګري یې ورنه بندیان کړل، او شیخ صاحب او أبوبکر الکویتي د موټر نه کوز او د یوي تیږي تر شا یې کمین ونیولو او مرتدینو سره د سهار د نهو بجو څخه نیولې تر دولس بجو پورې په خونړۍ جګړه بوخت وو، چې په دې دوران کې درې کیلو متره مزل وکړو، او بالآخره یو ناو ( دغره لمن) کې ورننوتل، او مرتدین په شاه وتمبیدل، خو خپلو بادارانو(امریکایانو) ته یې خبر ورکړو چې په دې ځاي کې د دهشت ګردو(د هغوي په ګمان) یوه جنګې ډله پټه ده. هماغه وو چې امریکایانو په (23) موټرو سمبال قوه (لښکر) راوستولو چې ټانګونه، او زغره وال ګاډي ، او شپږ طیارې ورسره وې، او بمباري او ډزی یې شروع کړې چې په نتیجه کې ابوبکر الکویتي د شیخ صاحب په مخ کې په شهادت ورسیدو، او شیخ صاحب رحمه الله هم ډیر سخت ټپي( زخمي) شو، خو خپله اسلحه یې ګذار نه کړه، او

ترهغې پورې ورسره وجنګیدو چې ده سره مهمات( اسلحه، او مرمې) ختمې شوې، او کله چې دمازیګر پاوباندې څلور بجې کیدې نو شیخ صاحب رحمه الله یې هم ګرفتار کړو.

قلوا ولكنهم طابوا فأنـجدهم **** جيش من الصبر لايحصى له عدد [1]

دوی کم او لږ کسان وو، خو پاک نفسه وو ، خو د صبر لښکر ددوی مرسته وکړه ،نو تعداد ددوی اوس نشي شمېرل کیدلای.(مطلب د صبر له وجې ډېر قوي او مضبوط شول)

اتم: د شیخ صاحب دژوند ځینې نااشنا حالات:

په شیخ صاحب باندې الله جل جلاله د خپل علمي، جهادي او دعوتي ژوند په اوږدو کې ډېرې پیرزوینې کړې چې د هغوی له جملې ځینې دادي:

1 )د المائدې سورت یې ټول په یوه ورځ کې په یادو یاد کړي وو.

2 )د حدیثه په سیمه کي یې تر ټولو مخکې جهادي سرګرمیانې د دیارلسو ملګرو په ملتیا شروع کړې، تر دې چې د حدیثه سیمې د دوی په لاس استقلال حاصل کړو.

3)کله چې د زرقاوي رحمه الله په امر د حديثې امیر مقرر شـــو، نو أبوعمر البغداد رحمه الله د ده د مشـــري لاندې يو فرد وو، نو ده به ورسره هغه مهال مشـــورې کولې، او دهغه په باره کې يې ويلي وو( سيکون لهذا الرجل شأن)، دا سړي (أبوعمر) به دخاص شان او مرتبې خاوند شی.

4)په فلوجه کې چې کله دويم جنګ وشو، نو د ټولو نه اخرني کس همدا وو چې له فلوجې څخه ووتو ، او ورسره الشـــيخ أبوحمـــزه المهاجـــر ، أبوالغادية، أبو الـــربيع، أبو جعفـــر المقدسي، او أبوعاصم الأردني ملګري وو.

5)د جهاد په سنګر کې به کله ناکله د ده او د الشـــيخ أبو حمزه المهاجر په مينځ کې داسې شـعري مقابلې کيدلې چې څو څو ساعته وخت به يې نيولو.

6)أبومصـــعب الزرقاوي رحمه الله سره د ډيرې نژدې او لوړې مرتبې خاوند وو، د مثال په توګه د فدايانو امير به ورته ويل : له ما څخه مشـــوره مه اخله مات صرف اطلاع او خبر راکوه .

7)د ده په لاس داسې شـــاګردان تربيه او فارغ شــــول چې اوس مهال يې په الدولة الاسلامية کې ډير غټ منصـــوبونه سمبالوي، لکه : الشيخ مناف الراوي

8)دا اولني کس دی چې د بنديانو لپاره يې يو پوره او ګټور پروګرام جوړ کړی وو چې ټول شرعي، بدنې او عســـــــکري ړخونو ته پکې پوره پاملرنه شـــوې وه، بيا ځوانانو هماغه د شـيخ صـاحب په لاس جوړ شـوی منهج او تګلاره وه په نورو شعبو او څانګو کې پلي او عملي کړله

# خاتمه:

دا ځيني  هغه معلومات وو چې د اســــلامي دولت د منجنيق ابومحمد العدنانــي رحمه الله په با ره کــې موراجمع کــړه، او د يادونې وړ ده چې په دې کې مو د خلکو په قيل قال( تاويلی ما ويلو) باندې با ور نه دی کړی، بلکې هـره خبره مو چې کړې هغه مو په صحيح او قوي سند سره کړيده( وما شــهدنا إلا بما علمنا وما كنا للغيب حافظين) او موږ له هغه پـرته چې راته معلوم دي د بل څه شــــاهدي نه وايو او نه موږ د غيبو ساتونکې يو

د الله تعالی نه سوال کووم چې شيخ صاحب رحمه الله ته اوږد عمر ، نيک عمل، سـيده وينا او د ژوند تر آخرې ورځې پورې په حق باندې مضبوطوالی په نصيب کړي.

**د ابوسفيان تركي بن مبارک البنعلي رحمه الله ( ابوهمام بكر بن عبد العزيز الأثري) ليكنه.**

٢٧/رجب/ ١٤٣٥هـ . الموافق: ٢٦/٥/٢٠١٤م).

أنا ماكتبت لكي أمجد طاغياً **** حاشاك يا قلم العلى حاشاكا

يا رب عطر لي حروفي بالرضى **** ماضل من يسعى لنيل رضاكا [1]

ما د دې لپاره ليكنه نه ده كړې چې سركشه عزتمند كړم، اې د عزت او سرلوړۍ قلمه!! له دې څخه دې الله تعالى وساته. اې زماربه !!زما حرفونه ( ليكنه) د خپلې رضـــــــامندۍ په خوشبويې خوشبو كړه، هغه څوک چې ستارضا كول غواړي هغه هيڅكله نه بې لارې كيږي.

( 1) په تصرف سره له منجنيق الدولة الاسلامية څخه راخيستل شوي.



د اسلامي دولت د رسمي وياند الشيخ

# أبي محمد العدناني

## شهادت

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين، والصلاة والسلام على نبينا محمد وآله وصحبه اجمعين، وبعد:

الله تعالى فرمايي: ( إِن يَمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهُ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَيَتَّخِذَ مِنكُمْ شُهَدَاءَ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ* وَلِيُمَحِّصَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَيَمْحَقَ الْكَافِرِينَ* أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ)[آل عمران:140/142]

ترجمه: كه تاسو ته چيرته زخم ورسي نو دغه (كافر) قوم ته هم مخكې د دې په څېر زخم رسيدلى وو، دغه ورځې دي چې مونږ يې د خلكو په مينځ كې اړوورا اړوو او د دې لپاره چې الله تعالى مؤمنان معلوم كړي او بل د دې لپاره چې الله تعالى ستاسو څخه شهيدان ونيسي او الله تعالى مينه نه كوي د ظالمانو سره او بل د دې لپاره چې الله تعالى مؤمنان پاک كړي او كافران هلاک كړي، آيا تاسو گمان كوئ چې جنت ته به داخل شئ! او لا تر اوسه الله تعالى ندي معلوم كړى هغه خلک چې جهاد كوي او نه هغه خلک چې صبر كوي.

د يو لوى جهادي سفر څخه وروسته چې د قربانۍ او د كفارو او د هغوى د ډلو مخې ته د خنډ كيدو څخه ډک وو، زمونږ نازولى شاسوار ابو محمد العدناني الشامي د ژوند د سپرلي څخه پلى او د شهيدانو د كاروان سره يوځاى شو، هغه كاروان چې جهاد او د الله تعالى په امر صبر كول د هغوى كار دى، هغه خلک چې د الله تعالى د دښمن په وړاندې كلک ولاړ دي او د اسلام په سنگرونو كې رباط كوي، هغوى په حق مضبوط ولاړ دي، دعوت كوي او مرگ ته يې انتظار باسي.

شيخ ابو محمد العدناني –تقبله الله- هغه وخت شهيد شو چې په حلب كې يې د عسكري عملياتو څخه څارنه كوله(إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ). الله تعالى دې الشيخ الحسيني القرشي په شهيدانو كې قبول كړي او د پيغمبرانو، صديقينو، شهيدانو او نيكانو خلكو سره دې يوځاى پراخه جنتونه وركړي او څه خايسته ملگرتوب دى، د الله تعالى نه سوال كوو چې مونږ ته پدې مصيب كې اجر او پناه راكړي او لدې په نتيجه كې راته خير راكړي، او شيخ –تقبله الله- ته په هغه څه عزت وركړي چې هغه يې هميشه ارزو كوله: هغه په شهيدانو كې قبول كړي او هغه له پراخه اجر او ثواب وركړي او د هغه خپلوانو او ورونو ته تسلي وركړي.

مونږ دلته ټول كفري ملت او د صليب بيرغ نيوونكو، چتلو بزدلانو ته د هغه څه زيرى وركوو چې د هغوى ملا گانې به ماتې كړي، ځكه په اسلامي دولت كې اوس يو داسې نسل پيدا شوى چې په عزت او غيرت يې تربيت شوى، هيڅ ډول ذلت نه قبلوي، مرگ سره داسې مينه لري لكه كفار او مرتدين چې ژوند سره مينه لري، داسې نسل چې دنيا ته يې طلاق وركړي او د الله تعالى په وعدو او آخرت كې يې فكر دى، د شيخانو وينې او مړينه به په هغوى كې نور هم د جهاد په لار كلكيدل او دغې هوډ پيدا كړي او هم به د كفارو سره په سختۍ خورا زيات مضبوط شي-باذن الله.